ورځپاڼه
# هیواد

مؤسس: عبدالرووف بېنوا
د تاسیس کال ۱۳۲۸ لمریز
چهارشنبه د شعبان المعظم ۲۰ مه ۱٤٤٦ ق کال، د کب لومړۍ ۱٤۰۳ ل کال، د فبروري ۱۹ مه ۲۰۲۵ م کال، خصوصي ګڼه ۵٤۸ مه، پرله پسې ګڼه ٦۳۸ مه، اتمه دوره

### د اسلامي همکاریو سازمان مرستیال:
## د امربالمعروف او نهي عن المنکر وزارت د اسلامي ټولنې اساسي اړتیا ده

د اسلامي همکاریو سازمان مرستیال او د افغانستان لپاره د دې سازمان ځانګړي استازي طارق بخیت د افغانستان د امربالمعروف او نهي عن المنکر وزیر شیخ محمد خالد حنفي سره په لیدنه کې ویلي، چې د امربالمعروف او نهي عن المنکر وزارت د اسلامي ټولنې اساسي اړتیا ده.

د یاد وزارت ویاند سیف الاسلام خیبر په ایکس پاڼه د نوموړي د دې لیدنې په تړاو خبر ورکړی او ویلي یې دي، چې ناسته کې دواړو لوریو د دې وزارت د لاسته راوړنو په اړه بحث کړی دی.

په ناسته کې ښاغلي بخیت همدارز د یاد وزارت کړنې او لاسته راوړنې ستایلي او ډاډ یې ورکړی، چې د امر بالمعروف، نهي عن المنکر او شکایتونو اورېدلو وزارت سره بشپړه همکاري کوي... ۳مخ

## د کابینې غونډه کې د پراختیایي پروژو د چارو پر چټکتیا بحث وشو



د اسلامي امارت د کابینې غونډه د رئیس الوزراء ملا محمدحسن اخوند په مشرۍ ورمه ورځ، ترسره شوه، چې د یو شمېر موضوعاتو په اړه په کې بحث او پرېکړې وشوې.

په غونډه کې د امارتي شرکتونو لوی ریاست ته دنده وسپارل شوه، چې د برښنا رسوني بهیر د چټکتیا لپاره کار وکړي او په دې اړه لازم اقدامات ترسره کړي.همدا راز د ریاست الوزراء اداري مرستیال ته دنده وسپارل شوه، چې د اوبو او انرژۍ وزارت او برښنا شرکت استازو سره ناسته وکړي ،تر څو د برښنا په برخه کې د یادو ادارو کاري استقامتونه په تفصیلي توګه واضح کړي... ۳مخ

## هیواد کې د معیاري روغتیایي چوپړتیاوو ۵ کلنه ملي پالیسي جوړه شوه

د عامې روغتیا وزارت وايي: د دې وزارت د نوې جوړې شوې ملي پالیسۍ د تشریح کولو ورکشاپ غونډه ترسره شوه.په دې غونډه کې د عامې روغتیا وزیر مولوي نور جلال جلالي، د یاد وزارت مرستیالانو، مرکزي او ولایتي رئیسانو، د چارو اداري د څارنې او پالیسۍ مرستیال مولوي سیف الدین تایب، د ملي دفاع او پوهنې وزارتونو استازو



د عالیقدر امیرالمؤمنین( حفظه الله ) د حکمونو او فرمانونو د تعقیب او نظارت... ۳مخ

### د اقتصاد وزارت:
## د نړیوال بانک وروستی راپور له واقعیتونو لرې دی

نړیوال بانک په دې وروستیو کې یوه تازه راپور کې ویلي ،چې د افغانستان اقتصادي وده لاهم کمزورې ده او پراخې بېوزلۍ او وزګارتیا میلیونونه کسان زیانمن کړي دي.د نړیوال بانک د راپور له مخې، تېر میلادي کال کې د افغانستان سوداګریز کسر ۵۴ سلنه زیات شوی او د صادراتو کچه ۵ سلنه راکمه شوې، خو د اقتصاد وزارت مسئولین بیا د نړیوال بانک دغه راپور ردوی او هغه افغانستان کې له شته واقعیتونو لرې بولي.د دغه وزارت ویاند عبدالرحمن حبیب رسنیو ته




ویلي: (( د نړیوال بانک راپور د هېواد له واقعیتونو څخه لرې دی او ردوو یې؛ د مالي او د هېواد د اقتصادي ځانبسیاینې پر لور حرکت، طبیعي سرچینو ته لومړیتوب دی او له کانونو ګټه‌اخیستنه او له سیمه‌ییز اتصال او ټرانزیتي ظرفیت څخه سمه ګټه اخیستنه، د وزګارتیا د کمولو لپاره محوري مسایل دي او د اقتصادي پراختیا او کارموندنې لپاره پلانونه جوړ شوی دی.))د اقتصاد وزارت مسئولین همدارنګه وایي: د نړیوالې ټولنې مثبت تعامل او د افغانستان د شتمنیو ازادول کولی شي، د هېواد په اقتصادي پرمختګ او د هېوادوالو د ژوند د وضعیت ښه‌والي کې مهم رول ولوبوي.

### مولوي قدرت الله جمال:
## تاریخي آبدات زموږ د هیواد ارزښتناک تمدني میراثونه دي

د اطلاعاتو او فرهنګ وزارت وايي: د دې وزارت د ګرځندوي، مالي او اداري چارو مرستیال مولوي قدرت‌الله جمال د یوه پلاوي په مشرۍ او د سمنګانو د اطلاعاتو او فرهنګ د رئیس مولوي فیروزالدین منیب په ملتیا د خلم ولسوالۍ له تاریخي ابدې جهان نما باغ څخه لیدنه وکړه.د یاد ولایت د اطلاعاتو او فرهنګ رئیس مولوي فیروزالدین منیب د دې تاریخي ابدې په اړه ویلي: جهان نما باغ په ۱۲۳۶ لمریز کال




کې د امیر عبدالرحمان خان له لوري جوړ شوی دی، دغه باغ چې ۷۰ جریبه ځمکه لري، په ۱۳۸۳ لمریز کال کې... ۳مخ

## هیواد کې د ماشومانو تنفسي ناروغۍ زیاتې شوي

د ماشومانو د روغتیا د اندراګاندي روغتون د داخله برخې مسئولین وايي، چې په دې ورځو کې د ماشومانو تنفسي ناروغۍ زیاتې شوې دي. د مسئولینو په خبره په دغه روغتون کې د ورځې له ۲۰ تر ۳۰ پورې په تنفسي ناروغۍ اخته ماشومان بستر‌یږي. د اندراګاندي روغتون د تنفسي ناروغیو او سینه بغل څانګه اوسمهال په یوه بستر کې د څلورو تر پنځو ناروغو ماشومانو درملنه کوي... ۳مخ

## لوګر کې ۱۵ نوي ښوونځي پرانیستل کېږي

د لوګر د پوهنې ریاست مسئولین وايي، راتلونکي ۱٤۰٤ ښوونیز کال کې به د لوګر ولایت په مرکز پل‌علم او ولسوالیو کې ۱۵ نوي لومړني ښوونځي پرانیزي.د دغه ولایت د پوهنې ریاست ویاند




شاهپور عرب رسنیو ته ویلي، دا ښوونځي د علماوو او قومي مشرانو له غوښتنو سره سم په هغو سیمو کې ، چې ښوونځي شتون ونه‌لري او ماشومان یې زده کړو ته لاسرسي نه‌لري، نوي پرانیستل کېږي.عرب زیاتوي، د نوموړو ښوونځیو د پرانېستلو لپاره پوره چمتووالي نیول شوي چې په پرانیستو سره به یې شاوخوا لس زره ماشومان زده کړو ته لاسرسي ومومي.بل لور ته د لوګر اوسېدونکي هم خوښ دي ،چې د پوهنې وزارت له لوري د دې ولایت په مرکز پل‌علم او لرې پرتو ولسوالیو کې نوي ښوونځي پرانیستل کېږي، خو ټینګار کوي، چې د شته ښوونځیو لپاره هم د ودانیو نشتون... ۳مخ

## هلمند کې ټرافیکي پېښې ۶ تنو ته مرګ ژوبله اړولې

د هلمند امنیتي مسئولینو د یاد ولایت په ګرشک ولسوالۍ کې د یوې ټرافیکي پېښې له امله ۶ کسانو ته د مرګ ژوبلې اوښتو خبر ورکړی دی.د دغه ولایت د امنیې قوماندانۍ ویاند ملا عزت الله حقاني باختر اطلاعاتي اژانس ته ویلي، چې د یاد ولایت د ګرشک ولسوالۍ په پارچاو سیمه کې یو ویګو ډوله موټر د بغرا کانال ته لوېدلی، چې له امله یې ۲ تنه مړه او ٤ نورټپیان شوي دي.ده زیاته کړې ،چې د پېښې ټپیان د ګرشک ولسوالۍ روغتون ته لېږدول شوي او له دې ډلې د ۳ تنو روغتیایي حالت د اندېښنې وړ ښودل شوي دي.

## د حیرتان ګمرک د موټرو تمځی ګټې اخیستو ته وسپارل شو




د مالیې وزارت وايي: د ګمرکونو لوی ریاست له لوري د څه باندې ٤۹ میلیونه افغانیو په ارزښت د حیرتانو ګمرک کې د موټرو تمځی جوړ او ګټې اخیستنې ته وسپارل شو. یاد وزارت زیاتوي؛ د دې تمځي په ٤.۵ جریبه ځمکه کې په اساسي... ۳مخ

## د شبرخان بندر -کندز ښار د برښنا مزي لېږدولو پروژه ګټې اخیستو ته وسپارل شوه

کندز کې د افغانستان برښنا شرکت له بودجې څخه له شبرخان سوداګریز بندر څخه تر کندز ښار پورې د ۱۱۰ کیلو ولته برښنا لېږد بیارغول شوي مزي پروژه د ۸۰ میلیونو افغانیو په ارزښت چې شاوخوا یوه میاشت وړاندې یې چارې پیل شوې وې، پرون د افغانستان برښنا شرکت د اجرائیوي رئیس په شتون کې پرانیستل شوه.په همدې موخه د کندز ولایت برښنا ریاست په عسقلان سب ستېشن کې پرتمینه غونډه جوړه کړې وه، چې په کې د برښنا اجرائیوي رئیس عبدالباري عمر، د کندز ولایت مرستیال مولوي حبیب‌الرحمن صهیب... ۳مخ



## غزني کې له روغتیایي مرکزونو سره د طبي وسایلو مرسته وشوه

د غزني د عامې روغتیا ریاست مسئولین وايي، چې د دې ولایت له ۲۵ روغتیایي مرکزونو سره د ۳۵ قلمه طبي او غیرطبي وسایلو مرسته وشوه.سرچینې باختر اطلاعاتي آژانس ته ویلي، چې د جک موسسې په مالي ملاتړ د ٦۵ زره امریکایي ډالرو په لګښت د یاد ولایت د مرکز او ولسوالیو په ګډون له ۲۵ روغتیایي ... ۳مخ






# اسلامي نظام؛ د استحکام او خدمت اړتيا

په افغانستان کې د اسلامي نظام حاکميت د يوې سترې لاسته راوړنې په توگه گڼل کېږي. له اوږدو جگړو، گډوډيو او بې عدالتيو وروسته، نن موږ د يو داسې نظام شاهدان يو، چې د اسلامي شريعت پر اصولو ولاړ دی او د عدالت، امنيت او ثبات پيغام لري. دا ستر نعمت موږ ته نه يوازې د خوښۍ احساس راکوي، بلکې زموږ دنده ده، چې د دې نظام د بقا، استحکام او پياوړتيا لپاره خپل مسئوليت ادا کړو.

د الله تعالی نعمتونو ته شکر يوازې په ژبه نه، بلکې په عمل سره ادا کېږي. که موږ رښتينی شکر ادا کول غواړو، بايد د دې نظام د ساتنې او قوي کولو لپاره کار وکړو. دا کار يوازې د حکومت مسئوليت نه دی، بلکې هر فرد، که عام وگړی وي يا چارواکی، بايد خپل مسئوليت ادا کړي. ملت بايد د دې نظام ملاتړ او د قوانينو اطاعت وکړي، اسلامي اخلاقو ته ژمن پاتې شي او د تعليم، اقتصاد او ټولنيزو اصلاحاتو له لارې د هېواد د پرمختگ لپاره کار وکړي.

په اسلامي نظام کې حکومتي مسئولين د ملت خادمان دي. دوی ته لازمه ده چې عدالت، شفافيت او ولسي خدمتونو ته ژمن پاتې شي. يو عادلانه حکومت هغه دی چې د عامو خلکو د ستونزو ته غوږ ونيسي، فساد ته اجازه ورنه کړي او د ملت روا هيلې پر ځای کړي. که مسئولين د اسلام د اصولو مطابق عمل وکړي، عدالت پلی کړي، اقتصاد ته وده ورکړي او د ولس باور تر لاسه کړي، نو دا نظام به لا پياوړی شي او خلکو ته به حقيقي خوشحالي راولي.

ملت هم د نظام د استحکام لپاره مهم رول لري. که خلک د قوانينو احترام وکړي، ملي گټې له شخصي گټو وړاندې وگڼي او د علم، تجارت، کرنې او صنعت په برخو کې پرمختگ ته کار وکړي، نو افغانستان به يو باثباته او پرمختللی هېواد شي. همدا راز، ولس بايد د فتنو، بې‌ثباتۍ او نظام ضد فعاليتونو پر وړاندې هوښيار واوسي، چې هېڅکله زموږ هېواد بېرته د بدبختيو کندې ته ونه لوېږي.

اسلامي نظام يوازې د يو سياسي بدلون نوم نه دی، بلکې دا د خلکو د دين، دنيا، عزت او وقار د ساتنې وسيله ده. د دې نظام بقا او استحکام زموږ د ټولو مسئوليت دی. که حکومت او ملت په گډه د اسلامي اصولو مطابق عمل وکړي او عدل، انصاف، صداقت، کار او ژمنتيا ته ارزښت ورکړي، نو افغانستان به نه يوازې باثباته وي، بلکې د اسلامي نړۍ لپاره به يو بريالی مثال هم وگرځي.

# د نړيوال سياست نوې بڼه، د لوېديځ زوال او د نويو زبرځواکونو راڅرگندېدل

محمد قاسم عزام

د نړيوال سياست توازن تل بدلون مومي. که موږ تاريخ ته وگورو، وبه وينو چې قدرت د يونان او روم له تمدنونو، اسلامي خلافتونو، بريتانيا او امريکا ته انتقال شوی او اوس داسې ښکاري چې دا توازن يو ځل بيا بدلون مومي. د ۲۰۲۱ کال د اگست مياشت، چې امريکا په افغانستان کې خپله شل کلنه جگړه بايلوده او د اسلامي امارت بيا تأسيس وشو، د نړيوال قدرت د بدلون يوه مهمه نښه وه. دا يوازې د يوه دولت سقوط نه و، بلکې د لوېديځ د استعماري دورې د کمزورتيا او د نوي سياسي نظم د سر راپورته کولو پيلامه وه.

د لوېديځ کمزورتيا او د زوال نښې د څو عواملو له امله څرگندېږي، چې په کې د امريکا د نړيوالې واکمنۍ کمزوري مهمه برخه ده. امريکا، چې يو وخت يې ځان د نړۍ "يو قطبي زبرځواک" گاڼه، اوس د داخلي او خارجي بحرانونو له لاسه د خپل قدرت کمېدو سره مخ ده. د افغانستان جگړه، چې د امريکا له ټولو اوږده جگړه وه، نه يوازې دا چې امريکا ته يې ميلياردونه ډالره زيان واړاوه، بلکې دې جگړې د امريکا په ځواک او اعتبار کې ستره کمزوري راوستله. په افغانستان کې د امريکا له سقوط سره لوېديځ ته وښودل شوه چې امريکا نه يوازې د خپلو متحدينو ملاتړ له لاسه ورکړ، بلکې د يو اسلامي حکومت په وړاندې يې ټولې ستراتېژۍ ناکامې شوې. د دې جگړې له نتايجو څرگنده شوه چې لوېديځ په نړۍ کې يوازې د خپلو اقتصادي او نظامي وسيلو پر بنسټ نه شي کولای اوږدمهاله سلطه رامنځته کړي، بلکې بايد د سيمو فرهنگي، مذهبي او تاريخي هويتونو ته هم درناوی وکړي. دې کمزورتيا او ناکامۍ لوېديځ د يو ژور بدلون او پر خپل نړيوال موقف بيا ارزونې ته اړ کړ.

د لوېديځ د زوال نښې په نړۍ کې په بېلابېلو برخو کې ښکاري، چې په هغې کې د امريکا د نړيوال نفوذ کمېدل له ټولو مهم دی. د افغانستان له جگړې څخه فرار او د اوکراين په اړه د امريکا ناکام ملاتړ د دې ښکارندويي کوي چې امريکا نوره د نړيوالو مسايلو په وړاندې خپل پخوانی ځواک نه لري. د منځني ختيځ په ډيپلوماسي کې هم امريکا او د هغې اروپايي متحدين کمزوري ښکاري، لکه څنگه چې په دې سيمه کې د اسلامي نړۍ د ننگونو او د روسيې له حضور سره سم دوی خپله اغېزمنه ستراتيژي نه شي تطبيق کولی. د اروپايي اقتصاد کمزورتيا د انرژۍ بحران او د چين او روسيې پر وړاندې د کمزورۍ دريځ په توگه ليدل کېږي، چې په دې توگه اروپا د خپلو اقتصادي همکارانو او ستراتيژيکو شريکانو په وړاندې د خپل موقف دفاع نه شي کولی. همدارنگه، د لوېديځ اخلاقي زوال هم څرگندېږي، چې په کې کلتوري بې‌ثباتي، د کورنيو او ټولنيزو ارزښتونو له منځه تلل او پر فردي آزادۍ بې‌ځايه تأکيد د ټولنې په بنسټونو باندې فشار راوړي. په همدې وخت کې، د نويو قدرتونو راپورته کېدل چې د لوېديځ د استعماري سياستونو پر ضد خپله جگړه پيل کړې، لکه چين او روسيه، د دې زوال د يوه نښې په توگه ښودل کېږي. د دې ټولو عواملو له کبله د لوېديځ په واکمنۍ کې يو ژور بدلون راوستل شوی دی.

د ۲۰۲۱ کال د اگست ۱۵مه د معاصر تاريخ يوه له مهمو نېټو څخه وه چې د اسلامي امارت په بيا تأسيس سره يې نړيوال سياست ته نوې اړخونه ورزيات کړل. د اسلامي امارت قيام نه يوازې دا چې امريکا ته يوه تاريخي ماته ورکړه، بلکې دا يې هم وښودله چې اسلامي نړۍ د خپلواکۍ او عقيدې په اړه نوي باور ته رسېدلې ده. امريکا چې له څو لسيزو راهيسې په افغانستان کې د خپل حضور لپاره استدلال کاوه، د اسلامي امارت قيام دا حقيقت څرگند کړ چې د زور او ځواک له لارې په اسلامي هېوادونو کې قوتونه ساتل او د ملتونو ارزښتونه او عقايد تر پښو لاندې کول نور امکان نلري. د اسلامي امارت قيام د اسلامي نړۍ په نفس باور پياوړی کړ، چې له دې سره د نورو ملتونو په ذهنيت کې هم د خپلواکۍ او اسلامي نظام د قيام لپاره فکرونه راژوندي شول. نړيوال سياستوال دې حقيقت ته ورسېدل چې يوازې اقتصادي او نظامي ځواک د بريا ضامن نه دی، بلکې د عقيدې او مقاومت ځواک له هر ډول وسلې څخه قوي دی. د امريکا د متحدينو په ځانگړې توگه د ناټو باور په نړۍ کې کم شوی، ځکه د اسلامي امارت قيام دا ثابته کړه چې امريکا نه شي کولای خپلو متحدينو ته ژمنه پاتې شي، ځکه يې ستراتېژۍ د اسلامي نړۍ په وړاندې خپلې ناکامۍ ته ورسوله. دې ټولو بدلونونو د نړيوال سياست په ډگر کې د اسلامي امارت قيام يوه ستره بريا وگڼله، چې د سياستونو او تحليلونو بنسټونه يې د نويو اصولو پراساس بيا ارزول پيل کړل.

د اسلامي امارت بريا نړۍ ته وښووده چې نوي ځواکونه راټوکېدلي، چې د نړيوال سياست انډول ته بدلون ورکوي. دا بدلون د لويديځو قدرتونو د نفوذ کمېدو، د سيمه‌ييزو ځواکونو د فعالېدو او د بديلو سياسي او اقتصادي اتحادونو د رامنځته کېدو سبب شو. چين، د نړۍ له ټولو ستر صنعتي هېواد، د اقتصادي قدرت په لور روان دی او د "يو کمربند، يوه لار" (Belt and Road Initiative) پروژه يې د نړيوال اقتصادي نفوذ پراخولو لپاره کليدي هڅه ده. د چين اقتصادي وده او نړيواله ستراتيژي د امريکا پر وړاندې يوه جدي سيالي پېژندل شوې ده. په ورته وخت کې، روسيې د اوکراين جگړې له لارې ښودلې چې له شوروي اتحاد وروسته هم دغه هېواد يو ځواکمن نظامي او سياسي...

۳مخ

# از امنیت موجود باید استفاده بهینه صورت گیرد

استوار

جنگ های تحمیلی طی بیشتر از چهارده‌ه اخیر کشور مارا از بعد مادی ومعنوی چنان متضرر ساخت که نیاز به زمان زیاد داریم تا دوباره به پای خود بایستیم.

طوری که همه می‌دانیم تمام داشته های مادی ومعنوی ما به نحوی از انحا به باد فنا رفت، بیگمان اقتصاد، اداره ونظم اجتماعی از هم پاشید و اکنون زمان آن رسیده است که مردم افغانستان با همسویی وهمدیگر پذیری متحدانه در باز سازی وطن دست آستین بر زده بار سنگین ویرانی های جنگ چهل ساله را تلافی وجبران نمایند.

افغانستان خانه مشترک تمام افغانهاست. هر فرد به نوبه ی خود در مقابل مادر وطن مکلفیت دارد. جد وجهد وسعی وتلاش می‌تواند آسیب های وارده بر کشور را برطرف نماید. اگر از حقیقت نگذریم کشور ما هر چیز دارد. قوای بشری، امکانات زیر زمینی از قبیل معدنیات و سیم و زر. اگر مردم ما مصممانه دست بکار شوند و در چنین وضعیت که امنیت سرتاسری در کشور حکمفرماست، چهره افغانستان از جنگزده گی و ویرانی عوض خواهد شد.

نباید به طمع کمک وهمکاری خارجی ها دست زیر الاشه بنشینیم هیچ طبعه خارجی بیکار نیست که بیاید و وطن مارا جور کند. آنها اگر چنین نیت خوب می‌داشتند، جنگ را بالای مردم ماتحمیل نمی کردند.

پس واضح است که بیگانه ها عامل اصلی ویرانی کشور ما اند. آنها شعبده بازانه آتش جنگ ونفاق را در این وطن دامن زدند، اکنون چگونه چشم به کمک وهمکاری آنها داشته باشیم. بیایید ؛چون مشت واحد ویکپارچه متحدانه با امکانات دست داشته همانطوری که به متجاوزین جواب دندان شکن دادیم، اکنون دوباره وطن خود را به دستهای خود بسازیم و دیگر به دشمنان این سرزمین اجازه ندهیم تا در میان ما تخم نفاق بذر نمایند. طی سه سال گذشته اگر کارکرد های امارت اسلامی را به بررسی بگیریم، در بخش های مختلف به ویژه در باز سازی شهر ها وسرک ها در مرکز و ولایات آنقدر کار صورت گرفته که واقعاً قابل مکث وتأمل است.

ما افغانها چشم به کمک خارجی ها نداریم. توقع ما این است، پول های منجمد شده افغانستان را که حق مسلم خود افغانهاست آزاد نمایند ودر امور داخلی ما مداخله ننمایند. بگذارند که ما وطن ویران خویش را معمور وآباد سازیم همانگونه که شاعری گفته است:

**ای وطن می سازمت آخر خودم می سازمت**

به امید اینکه روزی شاهد یک افغانستان آزاد، آباد وسربلند در سطح جهان باشیم. ان شاءالله

# مهمترین زمان بازنگری حالت تغذی

غذا یک فکتور مهم زندگی است که بدون آن رشد وانکشاف فکری وجسمی بشر نه تنها مشکل بلکه ناممکن خواهد بود بناءً مهمترین نکته در ابتدای زمان بارداری تغذیه خوب مادر است، چون خانم باردار در زمان القاح جنین و چندین هفته اول بارداری زیادتر درمعرض خطر قرارمیگیرد که در این زمان اعضا وسیستم ها رشد مینماید ازاینکه تغذی یک فکتورمهم برای نشونمای جنین وجزمهم زنده گی وداشتن طفل صحتمند است، باید خانم باردارازمزایای آن آگاه بوده غذای صحی را جزء برنامه زندگی خویش قراردهد.

مهمترین زمان بازنگری حالت تغذی مادرجهت بهبود، زمان قبل از حمل ومهمترین زمان رشد جنین هفته های اول بارداری است که در این زمان سیستمهای عضویت بدن جنین رشد سریع دارد،درحالی که اکثریت خانم ها در این مدت ازحمل خود آگاهی ندارند که به همین سبب تغیر حالت تغذی نزد خانم ها چندین ماه قبل از وقوع حمل از اهمیت خاص برخورداراست واین تغیرات باید مطابق به حالت صحی فرد، وزن وعادات خوردن شخص باشد. تغذی نامناسب برای طفل ومادر مضر واقع میگردد، ضرورت برای ازدیاد وزن در زمان بارداری موجود است، برای خانمی که قبل ازبارداری وزن طبیعی دارد باید درحدود ۲۵-۳۵ پوند وزن بگیرند که این ازدیاد وزن ازسبب جوره طفل، حجم مایع امنوتیک، بزرگ شدن ثدیه، تجمع مایع و افزایش حجم خون است. بناءً افزایش اضافی وزن دریک خانم سالم درحدوده۱۲,۵ کیلوگرام است که این ازدیاد وزن باید سریعاً واقع نگردد بلکه به طورتدریجی درطول مدت حمل صورت گیرد.

ترکیبات اصلی تغذی عبارت ازپروتین،شحم وکاربوهایدریت است که پروتین برای نشونمای اعضا در زمان بارداری مهم بوده ،چون رشد سریع رحم وثدیه مادردرزمان بارداری وابسته به پروتین است وعضویت جنین هم ازپروتین استفاده میکند که درطی شش ماه اخیر حمل درحدود ۱۰۰۰ گرام پروتین ذخیره میشودکه منابع مهم پروتین عبارتند از گوشت،تخم،شیر،لوبیا و ماهی.

کاربوهایدریت منبع بزرگ انرژی بوده که منابع مهم آن حبوبات ومیوه جات است. استفاده از شحم در زمان بارداری ضروریست اما باید محدود گردد. چون شحم برای انکشاف سیستم عصبی وجذب بعضی از ویتامین ها ضروریست. برعلاوه ترکیبات اصلی تغذی، خانم حامله به اخذ آهن،ویتامین ها ومنرال ها ضرورت دارد که برای جلوگیری ازکم خونی نزد خانم آهن توصیه میشود وهمچنان میتواند آهن مورد نیاز خویش را از غذا بدست بیاورد، ولی چون ضرورت خانم بارداربیشتر است متوانند ازمستحضرات صنعتی آن استفاده نمایند. استفاده ازفولیک اسید قبل از زمان بارداری تا ۱۲ هفته اول بارداری برای رشد سیستم عصبی حایزاهمیت است. همچنان استفاده از غذاهای مختلف وصحی در زمان بارداری به خانم باردار کمک می کند تا اکثریت ویتامین ها ومنرالهای مورد نیازرا بدست آورند. ولی چون ضرورت بیشتر دارند بهترخواهد بود تا ازتکمیل کننده های آن استفاده نمایند.باید تذکرداد اینکه ویتامین دی یکی از ویتامینهای اساسی درزمان بارداری وشیردهی است،ازاینکه ویتامین مذکورمقدارکلسیم وفاسفیت رادربدن تنظیم میکند وهمچنان طفل درماه های اول بعد ازولادت باید مقدارکافی ویتامین دی را دروجود خود ذخیره داشته باشد که کمبود آن سبب نرم شدن استخوانهای طفل میگردد.

مصرف بعضی از ویتامین ها مانند ویتامین إی سبب سوءشکل ولادی میگردد البته نوع موجود درسبزیجات ومیوه جات مضرنیست. مصرف روزانه ویتامین سی به مقدارکافی برای جذب آهن وبلند رفتن مقاومت بدن ضروریست. ویتامین بی ۱۲ هم درزمان بارداری به اندازه قابل ملاحظه کاهش میابد که باید تجویزگردد البته بصورت عادی درغذاهای که منشه حیوانی دارد دریافت میگردد. همچنان خاطرنشان باید ساخت اینکه نیازبه استفاده ازکلسیم درزمان بارداری است، اما به صورت روتین ومتداوم توصیه نمیگردد،غذاهای حاوی پوتاشیم ومگنیزیم را نیز نباید ازیاد برد،توام با استفاده از ویتامینها ومنرالها استفاده نمک آیودین دار را نیز نباید فراموش کرد. زیرا کمبود آن باعث اختلال عصبی میگردد.

در اخیر باید یاد آورشد اینکه خوردن غذای صحی به معنای پرخورینیست. بلکه استفاده مناسب ازغذا که تمام موادضروری بدن رامرفوع سازد یک اصل پذیرفته شده رژیم غذای است. مایع امنیوتیک وظیفه مهم را درزمان بارداری عهده دار است. ازجمله محافظت جنین ازصدمات خارجی وعبور انتان است که این مایع توسط یک غشا احاطه گردیده است، زمانی که غشا که همین مایع را احاطه نموده سوراخ یا پاره میگردد سبب خروج مایع میشود که این حالت بنام آبریزی یاد میشود که ممکن به مقدارکم ویازیاد واقع گردد.

رنځورمل داکتر ثمینه هاشمی
ترینر متخصص نسایی ولادی
شفاخانه رابعه بلخی

# کوچني صنعتونه؛ د اقتصادي ودې تضمين

په نړۍ کې هر پرمختللي اقتصاد د کوچنيو او متوسطو صنعتونو پر مټ وده کړې، ځکه چې دا سکتور د نوښت، کارموندنې او اقتصادي ثبات اساسي برخه ده. افغانستان، چې د اقتصادي ننگونو له اوږدې دورې څخه تېر شوی، اوس اړتيا لري ،چې د کوچني صنعت پراختيا ته جدي پاملرنه وکړي. د دې صنعت وده نه يوازې د کورني توليد ظرفيت لوړوي، بلکې د وارداتو پر کمښت او د صادراتو پر زياتوالي هم مثبته اغېزه لري. کوچني صنعتونه د لږې پانگونې، خو زياتې گټې لرونکي دي. په افغانستان کې د دغو صنعتونو پراختيا کولی شي، نه يوازې ځوان نسل ته د کار زمينه برابره کړي، بلکې د هيواد اقتصادي خپلواکي هم پياوړې کړي. د کوچنيو صنعتونو يو مهم اړخ دا دی چې هغوی د ارزانه توليدي توکو د چمتو کولو ترڅنگ، د ملي اقتصاد د ځان بسياينې لپاره مهم رول لوبوي. د دې صنعتونو ملاتړ کولای شي افغانستان د اقتصادي ستونزو له کړکېچ څخه وباسي.

د کوچنيو صنعتونو د نه پراخېدو يو اساسي دليل د پانگوالو کمزورې توجه او د مسئولينو د ملاتړ نشتوالی دی. د نړيوال بانک د راپور له مخې، هغو هېوادونو چې د کوچنيو صنعتونو لپاره مناسب چاپېريال برابر کړی، د بېکارۍ کچه يې ټيټه شوې او د عوايدو سرچينې يې پراخې شوي. افغانستان، چې د زيات شمېر کار غوښتونکو هېواد دی، بايد د دې صنعتونو د ودې لپاره جدي گامونه واخلي. د کوچنيو صنعتونو ودې ته زمينه برابرول د افغان حکومت، خصوصي سکتور، او نړيوالو مرستندويو ادارو گډ مسئوليت دی. که د کوچنيو صنعتونو لپاره د قرضو آسانتياوې برابرې شي، نو نوي سوداگر به وکولی شي په لږې سرمايې سره خپل کارونه پيل کړي. حکومت دې لا زياتو داخلي توليداتو ته لومړيتوب ورکړي، ترڅو کوچني صنعتونه د اړتيا وړ توکي له داخلي بازارونو تهيه کړي. د صادراتو اسانتيا هم مهمه ده، ځکه چې د کوچني صنعت محصولاتو ته نړيوال بازارونه پيدا کول د افغانستان اقتصاد ته د ثبات ورکولو يو مهم عامل کېدای شي. سربېره پر دې، د نويو کوچنيو صنايعو لپاره د مالياتو معافيت يا کمښت د پانگوالو د هڅونې لپاره يو مهم گام دی.

اوس مهال، که افغانستان غواړي ،چې د وارداتو پر ځای د خپلو توليداتو پر پراختيا تمرکز وکړي، بايد د کوچنيو صنعتونو ملاتړ ته لومړيتوب ورکړي. که د ځمکني زراعت، لاسي صنايعو، غالۍ اوبدلو او خوراکي توليداتو لپاره اسانتياوې برابرې شي، نو افغانستان کولی شي د سيمه‌ييزو او نړيوالو بازارونو برخه شي.

خصوصي سکتور هم مسئوليت لري ،چې د کوچنيو صنعتونو د ودې لپاره پانگونه وکړي. د نړيوالو تجربو پر بنسټ، هغه هيوادونه چې کوچني صنعتونه يې پياوړي کړي، د اقتصادي ودې ترڅنگ يې د خلکو عايد لوړ شوی او د کار فرصتونه زيات شوي دي. افغانستان بايد له دغو تجربو زده کړه وکړي او د کوچنيو صنعتونو د ودې لپاره مشخصې ستراتېژۍ رامنځته کړي.

په پای کې، د کوچنيو صنعتونو پراختيا يوازې د يو ځانگړي سکتور پرمختگ نه، بلکې د ټول هېواد د اقتصادي خپلواکۍ او ثبات لپاره يو مهم گام دی. که افغان حکومت، پانگوال او عام وگړي د دې صنعت د ودې لپاره گډ کار وکړي، نو افغانستان به د اقتصادي پراختيا پر لور يو مهم گام پورته کړي.

# افغان اعلانات

### اطلاعیه تصمیم اعطای قرار داد

بدینوسیله به تاسی از فقره ۲ ماده چهل و سوم قانون تدارکات به اطلاع عموم رسانیده میشود ، ریاست امربالمعروف نهی عن المنکر و سمع شکایات ولایت کابل در نظر دارد ، قرار داد تدارک یک حلقه چاه آب به عمق ۲۰۰ متر با مشخصات درج شرطنامه که تحت داوطلبی
(SOPRPE-KBL-OB-NCB-1403-2)
را به شرکت محترم سیحان روفی دارنده جواز شماره ۹۰۹۰۲ ولایت میدان وردک مرکز ولایت شهر وردگ به قیمت مجموعی مبلغ ( ۸۳۰۵۵۰ ) هشت صدو سی هزار و پنجصدو پنجاه افغانی اعطاء نماید. اشخاص حقیقی و حکمی که هر گونه اعتراض در زمینه داشته باشند ، می توانند اعتراض خویش را از تاریخ نشر این اعلان الی هفت روز تقویمی طور کتبی توام با دلایل آن به ریاست امر بالمعروف نهی عن المنکر و سمع شکایات ولایت کابل واقع چهار راهی دهن باغ شهرآرا کابل ، مطابق احکام ماده پنجاهم قانون تدارکات ارایه نمایند.

این اطلاعیه به معنی عقد قرار داد نبوده و الی تکمیل میعاد فوق الذکر و طی مراحل قانونی بعدی ، قرار داد منعقد نخواهد شد.۹۳۵۸

### اطلاعیه فروش امتیاز دواخانه

محترم جعفر علی احمدیار فرزند صفدر علی احمدیار ولدیت محمد شفیع احمدیار دارنده تذکره نمبر ( ۱۹۶۷۴- ۱۱۰۵-۱۳۹۹) مسکونه اصلی ولایت غزنی مالک امتیاز دواخانه علی باتور واقع ناحیه ششم ولایت کابل عنوانی معینیت غذا و ادویه عارض و خواهان فروش امتیاز دواخانه خویش بالای محترم خواجه ناصر صدیقی فرزند خواجه وکیل صدیقی ولدیت خواجه عبدالصبور دارنده تذکره شماره ( ۳۳۹۲۸- ۱۰۰۲- ۱۴۰۰ ) مسکونه اصلی ولایت کابل گردیده است .

اشخاص موسسات ودوایر دولتی در مورد ادعای داشته باشند از تاریخ نشر اعلان الی مدت ۱۰ روز به آدرس اداره ملی غذا وادویه افغانستان واقع ده افغانان تعمیر قبلی وزارت اطلاعات و فرهنگ مراجعه نمایند. ۹۳۴۳

### اطلاعیه تقرری

قرار است محترم اسد الله فرزند حاجی فضل دارنده تذکره شماره ( ۲۱۶۵۰۵ ) مسکونه فعلی ناحیه در مربوطات شاروالی کابل بحیث دریور تقرر حاصل نماید نامبرده اگر به دوایر و موسسات مسوولیت داشته باشد الی مدت یک هفته به ریاست مالی و اداری شاروالی کابل مراجعه نموده در غیر آن حق شکایت را نخواهند داشت.۹۳۴۱

### اطلاعیه مزایده جایداد

قرار است موازی ۵/۹۹ جریب زمین مندرج قباله شرعی نمبر ۲۳۸ بر ۹۴۸ مورخ ۱۳۹۰/۵/۳ مرتبه محکمه ابتدائیه ولسوالی بگرامی ولایت کابل اسامی محمد عارف فرزند محمد عظیم ولدیت محمد یاسین واقع قریه سهاک شیوه کی که به اساس قرار قضایی نمبر (۲۵۲ مورخ ۱۴۴۶/۴/۲۶ مقام عالی تمیز مرکز مبنی بر تاید قرار قضایی نمبر (۲۶۰ بر ۲۵۱ ) مورخ ۱۴۴۵/۸/۲۷ دیوان تجارتی محکمه استیناف ولایت کابل موید قرار قضایی نمبر ۱۳۵ بر ۱۱۰ مورخ ۱۴۴۵/۵/۵ دیوان تجارتی محکمه ابتدائیه زون دوم شهر کابل قرار است جایداد فوق الذکر در مجلس مزایده به فروش برسد.

افراد و اشخاص که خواهان خریداری آن باشند تا ۱۵ روز پس از ختم این اعلان در خواست های خویش را به مدیریت حقوق ولسوالی بگرامی تسلیم و شرطنامه را اخذ نمایند.۹۳۵۷

### اطلاعیه مفقودی

یک قطعه جواز وکالت دفاع ۶۵۶۲ مورخ ۱۴۴۶/۲/۲۰ مربوط محترم عبدالفتاح راسخ فرزند عبدالقادر که شماره متذکره نیز درج آن میباشد مفقود گردیده از اعتبار ساقط میباشند.۹۳۵۵

### اطلاعیه فروش موتر

اسامی محترم شرکت نوین احمدی لمتید یک عراده موتر پلیت ۹۶۸۲۲-۲ ش کابل نوع تیوتا کرولا جاپانی خویش را بعد از طی مراحل قانونی خرید و فروش بالای یما فرزند عبدالمبین بفروش رسانیده است.

بناء اشخاص ادارات و موسساتی که با عراده فوق کدام معامله داشته باشند الی مدت سه یوم به مدیریت ترافیک کابل اطلاع دهند. ۹۳۵۰

### اطلاعیه مفقودی

یک قطعه سند ملکیت یک نمبره زمین در شرکت ساختمانی خاور ده سبز نمبر مسلسل ۶۴ به مساحت ۲۶۰ متر مربع نمبر مسلسل ۰۰۴۸۰۶ به اسم محمد سلیمان سباوون فرزند حسن خان ولدیت سید غلام صدیق مفقود گردیده از اعتبار ساقط می باشد.۹۳۳۸

### اطلاعیه مفقودی

یک قطعه سند ملکیت یک نمبر زمین در شرکت ساختمانی خاور ده سبز نمبر زمین ۶۳ به مساحت ۲۶۰ متر مربع نمبر مسلسل ۰۰۴۸۰۵ به اسم محمد سلیمان سباوون فرزند حسن خان ولدیت غلام صدیق مفقود گردیده از اعتبار ساقط می باشد.۹۳۳۷

### اعلان مفقودی

یک جلد پاسپورت تجارتی به اسم عبدالناصر ولد عبدالقیوم مفقود گردیده از اعتبار ساقط است.۹۳۵۶

### اعلان مفقودی

یک قطعه ایرویبل گمرکی دارای نمبر 2A9496SW99D به اسم نصیر احمد احمدیار ولد احمد مفقود گردیده از اعتبار ساقط است.۹۳۵۱

### اعلان مفقودی

یک قطعه اقرار خط شرعی نمبر ۳۷۰/ ۱۱۸۷ مورخ ۲/۲۹/ ۱۳۹۵ مرتبه محکمه وثایق حوزه سوم شهر کابل به اسم محمد هارون ولد محمد ایوب ولدیت غلام حیدر مفقود گردیده از اعتبار ساقط است.۹۳۷۷

### اعلان مفقودی

یک جلد پاسپورت تجارتی به اسم بهر الدین ولد عبدالمقصود مفقودگردیده از اعتبار ساقط است.۹۳۴۴

### اعلان داوطلبی

پروژه های اعمار و احداث ترمینل های مسافربری و باربری در مرکز و ولایات کشور

فرمایش دهنده: وزارت ترانسپورت و هوانوردی

تاریخ نشراعلان: ۱٤۰۳/۱۱/۳۰ ه ش الی ۱٤۰۳/۱۲/۰۹ ه ش

وزارت ترانسپورت و هوانوردی پروژه های مشارکت عامه وخصوصی اعمار و احداث ترمینل های مسافربری را در ولایات کندهار، فراه، هلمند، نیمروز و ترمینل های باربری را در ولایات کندها، زابل، فاریاب، جوزجان، هلمند، ارزگان، هرات، نیمروز، فراه، بلخ و کابل بمنظور دیزاین، اعمار، بهره برداری و انتقال به مدت ( ۱۰ روز) به اعلان میسپارد. بدین وسیله داوطلبان میتوانند علاقمندی شان را طی یک قطعه عریضه با کاپی جواز فعالیت شرکت شان به ریاست پلانگذاری، تحقیق و تطبیق پروژه های این وزارت از تاریخ نشر این اعلان الی ۱۰ روز تقویمی ارایه نموده شرطنامه و اسناد داوطلبی را به شکل (سافت) از بخش مشارکت عامه و خصوصی در بدل مبلغ (۵۰۰۰) افغانی اخذ نمایند. ۹۳۷۱

### اطلاعیه دعوت به داوطلبی

شاروالی ولسوالی محمد آغه خریداری یک عراده موتر اکسکواتور دارای مشخصات ساخت کشور کوریا ( 140w-Doosan-dx) مادل (۲۰۰۸) وارد سالهای (۲۰۲۴- ۲۰۲۵ ) انجن ساده فت کمپنی تایر دار چلیده کشور های اورپایی خریداری مینماید. موسسات شرکت ها و اشخاص انفرادی که خواهش عقد قرار داد آن را داشته باشند از تاریخ نشر اعلان الی مدت ۷ یوم تقویمی درخواست های خویش را به مدیریت خدمات شاروالی محمد آغه تسلیم نموده شرطنامه را ملاحظه کرده میتوانند تضمین نقدا اخذ میگردد.۹۳۴۰

### اطلاعیه فروش موتر

اسامی محترم شرکت برادران حافظی لمتید یک عراده موتر پلیت ۳۸۸۳- ۲ ش کابل نوع تیوتا کرولا سالون جاپانی خویش را بعد از طی مراحل قانونی خرید و فروش بالای قدرت الله فرزند محمود بفروش رسانیده است.

بناء اشخاص ادارات و موسساتی که با عراده فوق کدام معامله داشته باشند الی مدت سه یوم به مدیریت ترافیک کابل اطلاع دهند. ۹۳۶۳

### اطلاعیه فروش امتیاز دواخانه

محترم محمد شفیع کریلی نیک خواه فرزند محمد عمر دارنده تذکره نمبر ( ۳۱۱۳۸ - ۱۴۰۰-۰۴۰۴) مسکونه اصلی ولایت پروان مالک امتیاز دواخانه چیکل منور واقع ناحیه مرکز ولایت پروان طی درخواستی به مقام محترم معینیت غذا و ادویه عارض و خواهان فروش امتیاز دواخانه خویش بالای محترم محمد هارون واحدی فرزند محمد ظریف ولدیت عبدالواحد دارنده تذکره شماره ( ۵۱۴۹۴- ۱۱۰۲ - ۱۴۰۱) مسکونه اصلی ولایت پروان گردیده است .

اشخاص موسسات ودوایر دولتی در مورد ادعای داشته باشند از تاریخ نشر اعلان الی مدت ۱۰ روز به آدرس اداره ملی غذا وادویه افغانستان واقع ده افغانان تعمیر قبلی وزارت اطلاعات و فرهنگ مراجعه نمایند. ۹۳۳۶

### اطلاعیه فروش موتر

اسامی محترم شرکت ناصر پاک افغان لمتید یک عراده موتر پلیت ۶۸۸۸۹- ۴ ش کابل نوع تیوتا کرولا جاپانی خویش را بعد از طی مراحل قانونی خرید و فروش بالای سید داود فرزند سید رزاق بفروش رسانیده است.

بناء اشخاص ادارات و موسساتی که با عراده فوق کدام معامله داشته باشند الی مدت سه یوم به مدیریت ترافیک کابل اطلاع دهند. ۹۳۶۵

### اطلاعیه فروش موتر

اسامی محترم شرکت خورشید لمتید یک عراده موتر پلیت ۹۵۸۸۴-۲ ش کابل نوع تیوتا کرولا سالون جاپانی خویش را بعد از طی مراحل قانونی خرید و فروش بالای صباون فرزند امر الله بفروش رسانیده است.

بناء اشخاص ادارات و موسساتی که با عراده فوق کدام معامله داشته باشند الی مدت سه یوم به مدیریت ترافیک کابل اطلاع دهند. ۹۳۴۶

---

### د نړیوال سیاست نوې بڼه ...

لوبغاړي پاتې دي او اوس یې د لوېدیځ پر ضد یو نوی بلاک جوړ کړی، چې په نړیوال سیاست کې د توازن لپاره مهم رول لري. هند هم د نفوس او ټکنالوژۍ په برخه کې د پام وړ ځواک دی، خو تر اوسه یې د چین او لوېدیځ ترمنځ د سیاسي بې‌طرفۍ تګلاره ساتلې ده. په دې ټولو کې، د اسلامي نړۍ بیدارېدنه هم یو ستر تحول دی؛ د افغانستان د اسلامي امارت بریا د اسلامي هېوادونو لپاره الهام شوې او دا هېوادونه لکه سعودي عربستان، ترکیه، ایران او قطر هڅه کوي چې خپل نفوذ زیات کړي. د اسلامي هېوادونو ترمنځ اقتصادي او سیاسي همکارۍ د دې سبب شوې چې لوېدیځ نور نشي کولای اسلامي نړۍ تجزیه کړي او په دې توګه د نړیوال سیاست انډول بدل شو.

د اسلامي امارت له بریا، د چین د اقتصادي پرمختګ او د روسیې د نظامي ځواک له ښودنې وروسته، نړۍ د څو قطبي نظام په لور روانه شوې ده، چې د نړیوال سیاست جوړښت کې یې بدلونونه راوستلي. په لومړي سر کې، د لوېدیځ بلاک ځواک کم شوی، ځکه امریکا، اروپا او ناټو له زوال سره مخ دي. د افغانستان جګړې، د اوکراین په ملاتړ کې ناکامۍ او داخلي بحرانونو دا هېوادونه کمزوري کړي، چې له امله یې د دوی نړیوال سیاسي او اقتصادي نفوذ هم کم شوی دی. بله خوا، د بریکس بلاک پیاوړی کېږي، چېرې چې چین، روسیه، هند، برازیل او ایران خپل اقتصادي او نظامي نفوذ زیاتوي. دا هېوادونه هڅه کوي چې په نړیوال سیاست کې د لوېدیځ سیالي وکړي او خپل ځای پیاوړی کړي. د اسلامي نړۍ بیداري هم د دې بدلون یوه مهمه برخه ده، ځکه چې د افغانستان د اسلامي امارت بریا د اسلامي هېوادونو لپاره یو نوی ځپرکي پرانیست او دا هېوادونه که یووالی وښیي، کولای شي یو خپلواک سیاسي او اقتصادي بلاک جوړ کړي چې د نړیوال سیاست په جوړښت کې به د پام وړ اغېزه ولري.

د اوسني نړیوال وضعیت په رڼا کې، راتلونکې د لوېدیځ او نوي ځواکمنو هېوادونو ترمنځ د سیالۍ ډګر دی. په دې کې درې احتمالي سناریوګانې وړاندې کېږي:

لومړی، چین او آسیا به د اقتصادي ځواک په لحاظ د نړۍ محور شي او امریکا به کمزورې شي.

دویم، د نړۍ قدرت به څو قطبي شي چې چین، روسیه، هند او اسلامي نړۍ به خپل بلاکونه ولري، په داسې حال کې، امریکا او اروپا هڅه کوي چې خپل پخوانی سیاسي او اقتصادي قوت بېرته راژوندی کړي، خو له داخلي او نړیوالو ننګونو سره مخ دي.

درېیمه سناریو دا ده چې که اسلامي نړۍ متحده شي، نو کولی شي د نړۍ د سیاسي، اقتصادي او نظامي معادلاتو اصلي لوبغاړې شي، چې د افغانستان د اسلامي امارت بریا یوه نښانه ده. په ټوله کې، د نړیوال سیاست جوړښت بدل شوی او راتلونکې به د نویو قوتونو او بلاکونو په جوړولو سره روښانه شي.

د نړۍ قدرت بدلون مومي، لوېدیځ کمزوری شوی او نوي ځواکونه راټوکېدلي. اسلامي امارت ثابته کړه چې د عقیدې او مقاومت ځواک له هر ډول وسلې او اقتصاد څخه قوي دی. چین، هند، روسیه او اسلامي نړۍ د قدرت د ترلاسه کولو لپاره سیالي کوي. راتلونکې د هغو ملتونو په لاس کې ده چې اقتصادي، نظامي او سیاسي تدبیر ولري. لکه څنګه چې تاریخ ښیي، تلپاتې قدرت نشته – هر ملت چې زحمت وباسي، قرباني ورکړي او متحد پاتې شي، هماغه به د راتلونکي زبرځواک وي.

### د امربالمعروف او ...

په همدې مهال د امربالمعروف او نهې عن المنکر وزیر ویلي، چې دغه وزارت د اسلامي اصولو په رڼا کې جوړ شوی دی او د ټولنې د معنوي اړخونو د پیاوړتیا لپاره یې پلې کول اړین دي.

یاده دې وي، چې افغانستان کې د اسلامي امارت په راتګ سره د امربالمعروف او نهې عن المنکر وزارت رامنځته شو، چې تر دې دمه یې ټولنه کې د ګڼو منکراتو، ناوړه رواجونو او بدو روایتونو مخه نیولې ده او نېکو اعمالو ته یې خلک بللي دي.

### د کابینې غونډه کې ...

او په دې برخه کې له یو بل سره همکاري او همغږي پیاوړې شي. پر دې سربېره د اقتصاد وزارت ته دنده وسپارل شوه، چې د پراختیایي پروژو د پلي کولو په برخه کې ټولو اداراتو سره په همغږۍ د پراختیایي بودجې د لګښتونو او د پروژو د پر وخت سرته رسولو موضوعات تعقیب کړي. غونډه کې همدا راز یو شمېر نور مسایل ځانګړو پلاویو ته وسپارل شول، تر څو یې چاري ورروستي کړي او راپور یې د کابینې راتلونکې غونډې ته وړاندې کړي.

### هیواد کې د معیاري ...

لوی ریاست د تفتیش مرستیال مولوي محسن هاشمي او د یو شمېر نورو امارتي ادارو مسئولینو او استازو ګډون کړی و. د عامې روغتیا وزیر مولوي نور جلال جلالي ټولو هېوادوالو ته د برابرو او معیاري روغتیایي خدمتونو وړاندې کولو په موخه د روغتیا وزارت له لوري د راتلونکو پنځو کلونو لپاره نوې جوړه شوې ملي پالیسي خورا اړینه وبلله او دا یې د اسلامي امارت له واکمنډو راپه دې خوا د روغتیا په برخه کې یوه ستره لاسته راوړنه یاده کړه.د عامې روغتیا وزیر وویل:" د یادې پالیسۍ پر مټ به شته امکاناتو ته په کتو له خپلو کاري شریکانو سره د منظمو اصولو او ګډې همغږۍ له لارې روغتیایي برخه کې پر مخ ځو او د ولسونو د هوساینې لپاره به ټول لومړیتوبونه د دغې پالیسۍ له مخې ټاکل کېږي. "مولوي نور جلال جلالي دغه راز زیاته کړه؛ هڅه کوو چې د هېواد ټولو اوسېدونکو ته یوشان معیاري خدمات وړاندې کړو، دې موخې ته د رسېدو لپاره یوې منظمې او ملي پالیسۍ ته اړتیا وه، چې له نېکه مرغه د روغتیا وزارت وتوانېد په لومړي ځل د خپلو داخلي متخصصینو په مرسته دا پالیسي جوړه کړي، چې له مخې به یې د راتلونکو پنځو کلونو لپاره د هېواد ټولو وګړو ته د غوره روغتیایي خدمتونو د وړاندې کېدو ترڅنګ دې برخه کې ګڼ شمېر پرمختګونه ترسره شي.په دې غونډه کې همدا راز د عامې روغتیا وزارت د روغتیایي پراختیا او پالیسۍ مرستیال ډاکټر محمد حسن غیاثي د یادې پالیسۍ د محتویاتو په اړه وویل: په دغې پالیسۍ کې به پر اوو عمده برخو کار کېږي، ترڅو موږ وکولی شو خپل لومړني، دوېمي او درېیمي خدمات لا معیاري کړو.

بل لور د چارو اداري د څارنې او پالیسۍ مرستیال مولوي سیف الدین تائب په منظمه توګه د چارو ترسره کولو لپاره د پالیسۍ شتون اړین وباله او په همدې موخه یې د روغتیا وزارت نوې جوړه شوې ملي پالیسي د روغتیایي برخې د پیاوړتیا او پراختیا لپاره یوه ستره لاسته راوړنه وبلله.د یادې غونډې په دوام د عامې روغتیا وزارت د پلان او پالیسۍ لوی رئیس ډاکټر سید رسول منګل د دغې پالیسۍ جوړولو پر کړنلارو او مراحلو هر اړخیزه وینا ترسره او د دې پالیسۍ د پلي کېدو برخه کې یې د لا زیات کوښښ او ژمنتیا ډاډ څرګند کړ.

### تاریخي آبدات زموږ ...

د اطلاعاتو او فرهنګ وزارت ته وسپارل شو. نوموړي زیاته کړې؛ په دې ځای کې د یوناني، باختري، کوشاني او اسلامي دورو ۷۰ تاریخي اثار، د معاصرو پاچاهانو سکې او نور لرغوني توکي ساتل کېږي. مولوي قدرت‌الله جمال د تاریخي ابدو د ساتنې پر ارزښت ټینګار کړی او ویلي یې دي؛ تاریخي ابدات زموږ د هېواد ارزښتناک تمدني میراثونه دي، چې د هېواد د تاریخ، کلتور او تمدني ارزښتونو انعکاس کوي. نوموړي د کلتوري میراثونو د ساتنې په برخه کې د ټولو خلکو پر ګډ مسئولیت ټینګار کړی او زیاته کړې یې ده؛ ټول مکلف یو چې د هېواد د تاریخي ابدو په ساتنه کې فعال ګډون وکړو، تر څو دا ارزښتناک اثار راتلونکو نسلونو ته په سمه توګه انتقال شي.

### د حیرتان ګمرک د موټرو ...

ډول کانکریټ اچونه شوې او په ۱۰جریبه او ۵۰۰ متره مربع ځمکه کې جغل اچول شوي، چې په یوه وخت د شاوخوا ۱۳۰ بار وړونکو موټرو د درېدو ظرفیت لري. همدارنګه په دې تمځي کې د پلي تګ منظمې لارې، یو زر او ۲۴۰ متره مربع زرغوني سیمې، ۱۹ جذبي څاګانې، د روښنایۍ لپاره ۱۰ د برېښنا ستنې او په بله جغل اچول شوې برخه کې د موټرو د تمځي لپاره د ۴۰۰ متره په اوږدوالي ډېرین دېوال هم شتون لري.

د موټرو د یاد تمځي په جوړېدو سره به موټر چلوونکو، سوداګرو او د سوداګریزو توکو د تشرېح لپاره د ګمرک کارکوونکو ته ګڼې اسانتیاوې برابرې شي.د یادونې وړ ده، چې د یادې پروژې بودیجه د مالیې وزارت له پراختیایي بودیجې څخه ورکول شوې ده او چارې یې په اوو میاشتو کې د یوه افغاني شرکت له لوري بشپړې شوې دي.

### لوګر کې ۱۵ نوي ښوونځي ...

د زده‌کوونکو د کتابونو او همدارنګه د مسلکي ښوونکو د کمښت ستونزو ته رسېدنه وکړي.د یادونې وړ ده چې د لوګر د پوهنې ریاست په نوي ښوونیز کال کې په خپلو ټولو ښوونځیو کې د ۱۸زره نویو زده‌کوونکو د جذبولو خبر هم ورکړی دی.

### هیواد کې د ماشومانو ...

په داسې حال کې چې ناروغ لرونکو له دې وړاندې هم د درملنې د بسترونو له کموالي شکایتونه درلودل. د ډاکټرانو په خبره، پر سړې او ککړې هوا سربېره، بېوزلي او بې‌روزګاري، حفظ الصحې ته نه پاملرنه او له ماشومانو د ناروغو کسانو لرې نه‌ساتل د دې لامل کېږي، چې ډېر ماشومان پر تنفسي ناروغۍ اخته شي.

### غزني کې له روغتیایي ...

مرکزونو سره د ۳۵ ډوله بېلابېلو طبي او ۱۰ نورو غیر طبي وسایلو مرسته شوې ده. سرچینې زیاته کړې، چې اوسمهال په دغه ولایت کې ۱۰۹ روغتیایي مرکزونه د یادې موسسې د روغتیایي خدمتونو تړوښتېښ لاندې دي او هڅه کوي، چې په راتلونکي کې له روغتیایي مرکزونو څخه د اړتیا وړ نور وسایل وپېري.ورته مهال د یاد ولایت د عامې روغتیا رئیس ډاکترمحمد زرک ځیرک د جک موسسې له لوري د دغو طبي او غیر طبي وسایلو له مرستې مننه وکړه، چې یادې مرستې به تر ډېره بریده د یادو روغتیایي مرکزونو شته ستونزې حل کړي.

### د شبرخان بندر –کندز ښار ...

د امارتي ادارو مسئولینو، قومي مخورو، سپین‌ږیرو، علمای کرامو، ځوانانو او خبریالانو ګډون کړی و.ډاکتر عبدالباري عمر ویلي؛ ډېر د خوښۍ ځای دي چې نن په هېواد کې د پر له پسې پروژو په دوام دا ځل په کندز کې د شمال ختیځ زون په کچه د یوې داسې پروژې د پرانیستې شاهدان یو، چې ولسونو ورته شېبې شمېرلې.نوموړي زیاته کړې؛ د اسلامي امارت په راتګ سره د هېواد په ګوټ ګوټ کې کومې سترې او بنسټیزې پروژې چې ترسره کېږي، ټولې له داخلي منابعو څخه تمویلېږي، چې دا د هېوادوالو لپاره د خوښۍ ځای دی.د ښاغلي عمر په وینا؛ د دغه لین په نښلېدو سره به له‌دې وروسته ۹۵ میګا واټه برېښنا او په کلني ډول ۱۴۷ میلیونه افغانۍ عواید ترلاسه کېږي.

### د اسلامي همکاریو سازمان ...

اقتصادي، تعلیمي، له نشه یي توکو سره مبارزې، د سیمې او نړۍ له هېوادونو سره د مثبت تعامل او نورو ډګرونو کې د اسلامي امارت هڅو او لاس ته راوړنو ته په اشارې ویلي ،چې ځمکني واقعیت له هغه څخه خورا مثبت توپیر لري، څه ډول چې په بهرنیو رسنیو کې انځورېږي.ده هیله څرګنده کړې، چې بهرني اړخونه باید د رسنیو له خوا د وړاندې کېدونکي انځور پر ځای ځمکني واقعیتونه په خپلو سترګو وګوري.د بهرنیو چارو وزارت سرپرست همدارنګه ویلي ،چې د جګړو له کبله د نړیوالو په ذهن کې د خلوېښتو کلونو جوړ شوي انځور بدلول یوازې په خپلو سترګو د واقعیتونو د لیدلو له لارې ممکن دي.په ورته وخت کې ښاغلي طارق بخیت په دې کتنه کې ویلي: ((دا چې موږ دلته یو، په دې دلالت کوي چې موږ په خپلو سترګو واقعیتونه لیدل غواړو، نه د نورو له سترګو او دا چې نظرونه به د بېلابېلو اړخونو اورو، خو په پای کې به پرېکړه په خپلواکه توګه او د واقعیتونو په رڼا کې کوو)) نوموړي زیاته کړې، چې د اسلامي همکاریو سازمان له افغانستان سره په تعامل کې له پیل څخه د سلیقوي چلند پلوي نه کوله او د واقعیتونو د موندلو او انعکاس پر تګلارې یې باور درلود. ښاغلي طارق بخیت همدارنګه ویلي ،چې د اسلامي همکاریو سازمان به له بېلابېلو لارو د افغانستان ملاتړ ته دوام ورکړي.

### امریکایي سناتورانو د غزې ...

وړاندې کړې.د امریکا د ولسمشر دا څرګندونې لا له وړاندې له غبرګونونو سره مخ وې او پخپله امریکا کې هم دیموکراتانو دا "قومي تصفیه" بللې وه.له بل لوري د ټرمپ دا طرحه د اسلامي امارت په شمول په لویه کچه د نړیوالو او عربي هېوادونو له غندنې او مخالفت سره مخ شوې ده. د افغانستان اسلامي امارت د بهرنیو چارو وزارت هم د یوې اعلامیې په خپرولو سره د فلسطینیانو د بې‌ځایه کولو او په نورو هېوادونو کې د هغوی د مېشتولو په تړاو د امریکا د ولسمشر ډونالډ ټرمپ څرګندونې د نړیوالو قوانینو ښکاره نقض بللې.د رویټرز د راپور له مخې، ټاکل شوې چې د سعودي عربستان، متحدو عربي امارتو، اردن او مصر چارواکي به په نږدې راتلونکي کې د غزې د راتلونکي په تړاو لیدنه او بحثونه وکړي.

### د هرات صنعتي ...

فعالیت وکړي.د هرات صنعتي ښارګوټي د یو شمېر فابریکو مسئولینو هم په دې برخه کې خپلې ستونزې او وړاندیزونه شریک کړي او ژمنه یې کړې چې د چاپېریالي معیارونو د پلي کولو لپاره به لازم ګامونه پورته کړي.هېره دې نه وي چې یاده ارزونه د صنعتي فعالیتونو د چاپېریالي مدیریت د ښه والي په موخه ترسره شوې او ټاکل شوې ده د نورو ولایتونو د صنعتي فعالیتونو وضعیت هم وارزول شي.

### قوشتېپې کانال ته څېرمه ...

او ګټې هم لري. همدارنګه زرګونه هکتاره ځمکې خړوبوي او زرګونو کسانو ته د کار زمینه هم برابرېږي.)) (( په هره کچه، چې د قوشتېپې کانال ته څېرمه پانګونه وشي اقتصادي اغېزې به یې زیاتې وي، ځکه د غلې دانې او عوایدو د ترلاسه کولو له اړخه به ځان بسیاینې ته ورسېږي.))دا په داسې حال کې ده چې تېره اوونۍ د ملي پراختیا شرکت ویلي وو ،چې د قوشتېپې کانال د دویم فاز د کیندلو چارې ۸۷ سلنه او د سربند جوړولو رغنیزې چارې ۷۵ سلنه بشپړې شوې دي.د ملي پراختیا شرکت د معلوماتو له مخې، د دې سترې پروژې په بشپړېدو سره به، د هېواد په شمال زون کې د بلخ، جوزجان او فاریاب ولایتونو ۵۵۰ زره هکتاره شاړې ځمکې له آمو سیند څخه خړوبې شي.

### سرکال ننګرهار کې ...

ستونزو ته په کتلو او د ښاري اسانتیاوو په موخه ورته اقدام شوی دی او د رغنیزو چارو څارنه یې شوې ده تر څو کارونه یې په معیار برابر تر سره شي. نوموړي همداشان ویلي دي چې په یادو ټولو پروژو باندې ۶۵۵ میلیونه افغانۍ لګښت راغلی دی، نوموړي لګښت ټول پرې له داخلي عوایدو شوی دی او یادې پروژې په نهو ناحیو کې تر سره شوې دي . د یادو پروژو د تطبیق موخه د افغانستان ښارونو او کلیو کې د لنډ مهالو کاري فرصتونو برابرول او د بېړنیو لومړنیو خدمتونو وړاندې کول دي چې د ننګرهار ښاروالۍ او همکارو موسسو په مرسته د ښار ټول عمومي او فرعي سړکونه په بنسټیز ډول ورغوي. دا په داسې حال کې ده چې د ننګرهار ښاریانو به تېر کې ښاري اسانتیاوو ته په اسانه لاسرسي نه لاره او خپلو کارونو ته یې پر وخت رسېدنه نه شوای کولای چې ننګرهار ښاروالۍ د یاد ولایت د اوسېدونکو ستونزو ته په کتلو ورته اقدام د بیارغونې په برخه کې کړی دی.

زیارمل هوتک

Hewad Daily

چهارشنبه د شعبان المعظم ۲۰ مه ۱٤٤٦ ق کال د ۱٤۰۳ ل کال د کب لومړۍ د 2025 م کال د فبروري 19 مه

دورځپانو رئیس : انجنیر عُزیر «بریالی»
موبایل : ۰۲۰۲۵۲۶۳٤۰
آمر او مسئول مدیر : عطاء الله مبارز
موبایل: ۰۷۷٤۳۱۸۹۰۲
مسئول سکرتر: شېرمحمدنظري
موبایل: ۰۷۸۸۵۰۳۳۷۱

پته: اتمه ناحیه، د المپیک څلورلارې، د حضوري چمن ختیځ، کابل افغانستان
داړیکو شمېره: س۰۲۰ - ۲۵۲۶۳٤۰۰۲۰
E-mail :info@hewaddaily.com
E-mail : hewad1948@gmail.com
دهیوادورځپاڼې انټرنېټي پاڼې دلاندې وېب سایټ له لارې هم کتلی شئ
وېب سایټ: www.hewaddaily.com
دشکایاتو اوتوزیع څانګه:
۰۲۰۲۳۱۲۵۰۹-۰۷۶۶۰۴۴۹۶۶-۰۷۳۶۰۶۰۷۳

# د اسلامي همکاریو سازمان د افغانستان ملاتړ ته دوام ورکوي

د بهرنیو چارو وزارت سرپرست مولوي امیرخان متقي ورمه ورځ ناوخته په خپل کاري دفتر کې د افغانستان لپاره د اسلامي همکاریو سازمان ځانګړي استازي او مرستیال طارق بخیت او مل پلاوي سره کتلي دي.دغه وزارت د یوې خبرپاڼې په خپرولو سره ویلي ،چې په دغې کتنه کې دواړو لورو د امنیت، تعلیم، نشه یي توکو سره د مبارزې، اقتصاد، بشري او پرمختیایي مرستو، په یاد سازمان کې د افغانستان اسلامي امارت د استازیتوب پر پیاوړتیا او نورو بېلا بېلو موضوعاتو خبرې کړې دي. ښاغلي متقي په دې کتنه کې د امنیتي...

۳مخ



## امریکایي سناتورانو د غزې د اشغال لپاره د ټرمپ طرحه رد کړه

د امریکا د جمهوري غوښتونکو ګوند سناتور لیندسي ګراهام د غزې د اشغال او د فلسطینیانو د

سناتور ریچارډ بلومنتال هم د غزې د نیولو طرحه په بشپړ ډول د نه منلو بللې او ټینګار



ایستلو په تړاو د ډونالډ ټرمپ طرحه رد کړې ده.له بلې خوا د امریکا د ډیموکرات ګوند

یې کړی، چې عربي هېوادونه ښایي د غزې د راتلونکي لپاره غوره حللارې...

۳مخ

## مولوي عتیق الله عزیزي: د کلتوري میراثونو په ساتنه کې د غیردولتي مؤسسو ونډه مهمه ده

د اطلاعاتو او فرهنګ وزارت د هنر او کلتور معین مولوي عتیق الله عزیزي، ورمه ورځ د غیر دولتي مؤسسو له مسئولینو سره په ناسته کې، د کلتوري میراثونو په ساتنه کې د غیردولتي مؤسسو ونډه مهمه بللې ده.په دې ناسته کې د هنر او کلتور معین، د هېواد د تاریخي او کلتوري میراثونو په ساتنه کې د غیردولتي مؤسسو ونډه مهمه بللې او ویلي یې دي چې نړیوال سازمانونه او مؤسسې باید دې ته وهڅول




شي، تر څو د افغانستان د تاریخي او کلتوري میراثونو په ساتنه کې لېوالتیا پیدا کړي.

ده، افغانستان د کلتوري او تاریخي میراثونو له اړخه یو بډای هېواد یاد کړی او زیاته

کړې یې ده ،چې د یادو میراثونو ساتنه یوازې د اسلامي امارت مسئولیت نه دی او په کار ده چې د یوې منظمې ستراتېژۍ له مخې په ګډه د افغانستان له ملموسو او غیرملموسو کلتوري میراثونو څخه ساتنه وشي.
د غیر دولتي مؤسسو استازو هم خپل وړاندیزونه او غوښتنې شریکې کړې، چې د اطلاعاتو او فرهنګ وزارت د هنر او کلتور د معین له لوري، د حقوقي ملاتړ لپاره د همکارۍ ډاډ ورکړ شوی دی.

## د افغانستان بانک پلاوی د سایبري امنیت کنفرانس کې د ګډون لپاره روسیې ته تللی

د افغانستان بانک رئیس نور احمد اغا او ورسره مل پلاوی د اورال

فدراسیون یکاترینبورک ښار ته تللی.



ټولنې له لوري په مالي چارو کې د سایبري امنیت نړیوال کنفرانس کې د ګډون په موخه د روسیې

دغه کنفرانس به چې د فبروري له ۱۹مې تر ۲۱مې دوام وکړي د بېلابېلو هېوادونو د مالي سکټور

استازي، متخصصین او څېړونکي په کې برخه اخلي.دغه کنفرانس کې به ګډونوال د مالي امنیت، د عصري بانکوالۍ سیستمونو، د سایبري ګواښونو پر ضد د موثرو تدابیرو او د مقاومت څواک د لوړولو، د ډیجیټل بانکوالۍ ساتنې او د نویو ټکنالوژیو د امنیتي چوکاټ پر پراختیا بحثونه وشي.د افغانستان بانک دې کنفرانس کې ګډون د سایبري امنیت د نوې پوهې ترلاسه کولو کې مهمه موقع بللې، چې د هېواد بانکي سکټور به د نړېوالو تجربو او نظرونو د همکارۍ لپاره فرصتونه هم برابر کړي.

## د هرات صنعتي ښارګوټي کې د یو شمېر فابریکو چاپېریالي وضعیت وارزول شو

د چاپېریال ساتنې ملي ادارې عمومي رئیس مولوي مطیع الحق خالص، د هرات په صنعتي ښارګوټي کې د یو شمېر فابریکو د چاپېریالي وضعیت ارزونه کړې ده. د ارزونې پر مهال د فابریکو د فعالیتونو، د فاضلابو مدیریت، د هوا د ککړتیا کچې او د چاپېریال ساتنې اصولو ته د پاملرنې څرنګوالي څېړل شوي دي.د چاپېریال ساتنې ملي ادارې عمومي رئیس، د فابریکو مسؤلینو ته لارښوونه کړې چې د چاپېریالي معیارونو رعایت ته ځانګړې پاملرنه وکړي.ده د چاپېریال ساتنه د ټولو ګډ مسؤلیت بللی او ویلي یې دي چې اسلامي امارت د صنعتکارانو او خصوصي سکټور ملاتړ ته ژمن دی او هڅه کوي چې صنعت له چاپېریال سره په همغږۍ ...

۳مخ

## قوشتېپې کانال ته څېرمه د کرنیزو او صنعتي کمپلکسونو جوړولو لپاره ۲۰۰زره هکټاره ځمکه ځانګړې شوې

په شمال زون کې د قوشتېپې کانال ته څېرمه د کرنیزو او صنعتي کمپلکسونو جوړېدو لپاره ۲۰۰ زره هکټاره ځمکه ځانګړې شوې.د کرنې، اوبولګولو او مالدارۍ وزارت چارواکي وایي: دغه ځمکه په بلخ، جوزجان او فاریاب ولایتونو کې د کرکېلې او صنعتي کمپلکسونو د جوړېدو لپاره ځانګړې شوې.
د یاد وزارت ویاند مصباح الدین مستعین وایي: د قوشتېپې کانال ته څېرمه د کرنیزو ځمکو پر وېش سربېره به درې لوی صنعتي کمپلکسونه هم جوړ شي. (( د هېواد په شمال زون کې په بلخ، جوزجان او فاریاب ولایتونو کې د کرنیزو ځمکو او صنعتي کمپلکسونو

د جوړېدو لپاره د یوې ګډې کمېټې له سروې او تثبیت وروسته تخصیص شوې او په پام کې ده، چې درې لوی معیاري کمپلکسونه به جوړ

د صنعت او کرنې د ودې لپاره ګټوره بولي.د اقتصادي چارو مبصرین عبدالظهور مدبر او امیدالله قاسم زی یې په اړه وایي: (( د قوشتېپې کانال



شي.))له بلې خوا د اقتصادي چارو یو شمېر مبصرین، قوشتېپې کانال ته څېرمه پر ځمکو پانګونه په هېواد کې

د افغانستان لپاره یوه ملي او ستراتیژیکه پروژه بلل کېږي او د اقتصاد له اړخه ورته ډېرې مثبتې اغېزې ...

۳مخ

## ۲۰۳۰ قیراطه زمرد وپلورل شول

د پنجشېر د کانونو او پټرولیم ریاست مسئولینو پرون د دغه ولایت له کانونو د تازه استخراج شویو زمردو د پلورلو خبر ورکړی دی. د دغه ولایت د کانونو او پټرولیم رئیس محمد قاسم امیري ویلي، چې یو ځل بیا د هېواد پر سوداګرو ۲ زره ۳۰ قیراطه زمرد د ۴۹ زره ۲۰۰ ډالرو په ارزښت د کانونو د څارنې کمېټې، د سیمه ییزو چارواکو او سوداګرو په شتون کې د داوطلبۍ له لارې وپلورل شول. امیري زیاته کړه، چې له دې وړاندې هم د بولۍ له لارې د هېواد پر سوداګرو زرګونه قیراطه زمرد پلورل شوي دي.

## سږکال ننګرهار کې د ۲۲رغنیزو پروژو کارونه بشپړ شوي

د ننګرهار ښاروالۍ ویاند حامد محمودي د هېواد ورځپاڼې خبریال سره مرکه کې ویلي دي چې د سږ کال له پیله تر اوسه پورې په ننګرهار

شوي دي. د پاتې نورو پروژو کارونه جریان لري چې نږدې راتلونکي کې به یې کارونه بشپړ شي. د محمودي په خبره: په ننګرهار ولایت کې تر



ولایت کې د ۴۶ بېلا بېلو رغنیزو پروژو کارونه پیل شوي دي چې د هغو له جملې د ۲۱ پروژو کارونه بشپړ شوي او ګټې اخیستنې ته سپارل

ډېره د سړکونو کانکرېټ، ویالو، پلچکونو، د سړکونو قیر ریزي، د سړکونو داغ نیونه او د پلیو لارو جوړول چې د خلکو ...

۳مخ

## کابل کې د انسان تښتوونکو ۶ کسیزه ډله ونیول شوه



د کورنیو چارو وزارت وایي، امنیتي ځواکونو د کابل ښار اوومې امنیتي حوزه کې د کشفي عملیاتو په ترځ کې د انسان تښتوونکو شپږ کسیزه ډله نیولې.د کورنیو چارو وزارت ویاند مفتي عبدالمتین قانع ویلي، دغو عملیاتو کې دوه تنه چې د پروان ولایت د سرخ پارسا ولسوالۍ اوسېدونکي دي له انسان تښتوونکو ژغورل شوي. ښاغلي قانع ویلي، دغه کسان څه موده وړاندې ایران کې تښتول

شوي وو او انسان تښتوونکو یې د پرېښودو په بدل کې د هغوی له کورنۍ د ۱۵۰ زره ډالرو غوښتنه کړې وه.د نوموړي په خبره، نیول شوي کسان د لا زیاتو څېړنو لپاره اړوندو ارګانونو ته سپارل شوي دي.د یادونې وړ ده، چې امنیتي ځواکونو تېرو درېوو کلونو کې د انسان تښتوونکو پر وړاندې جدي اقدامات کړي او د امنیتي ځواکونو په عملیاتو کې د انسان تښتوونکو ګڼ باندونه له منځه وړل شوي دي.

## تورخم ګمرک کې زرګونه جعلي سندونه نیول شوي

د مالیې وزارت خبر ورکړی، د تورخم ګمرک د ځانګړې مفرزې

وزارت په خبرپاڼه کې ویل شوي دغه سندونه په ډېر مهارت



قطعي د ګزمې پر مهال یو شمېر جعلي سندونه نیولي دي.د مالیې

سره ځای پر ځای شوي وو او قاچاق کوونکو غوښتل په پټه یې

افغانستان ته راوړي.نیول شوېو جعلي سندونو کې ۱۰۰۲ نکاح خطونه، ۳۱۵ د موټرو لایسنسونه، ۴۷۱۶ د بهرنیو چارو وزارت ټاپې، ۴۴۰ امارتي تذکرې او ۵۹۰ د تېر نظام پېژندپاڼې شاملې دي.د دغو سندونو په تور دوه کسان نیول شوي، چې له لومړنیو پلټنو وروسته به د نورو اجراءاتو لپاره اړوندو ارګانونو ته ور وپېژندل شي.د یادونې وړ ده، چې له دې وړاندې هم امنیتي ځواکونو څو ځلې تورخم ګمرک کې ورته ګڼ جعلي سندونه او وسلې نیولې دي.